نبوي مرغلري

رسول الله (ص) فرمايلي دي:
ژباړه: بې شکه په تاسو کي ماته محبوب او د قيامت په ورځ؛ تر ټولو نژدې هغه خلک دي چي په تاسو کي د ښکو اخلاقو لرونکي وي!
﴿رواه البخاري﴾

# طلوع افغان

غوره وينا وي
عبدالهادي "همت":
هغه خوند چي د علم څخه ترلاسه کېږي، سپېڅلی او خالص وي.

د امتياز څښتن:
د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کي دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، يکشنبه ۲۶/رجب المرجب/۱۴۴۶ هـ ق، ۷/سلواغه/۱۴۰۳ ل کال – ګڼه (۶۵)

Sunday-26-January-2025 Issue: 65


## ملا عبدالمنان عمري: سعودي عربستان دي د افغاني کرهنيزو محصولاتو په صادراتو کي هڅه وکړي

د کار او ټولنيزو چارو وزارت سرپرست ملا عبدالمنان عمري تېره ورځ په خپل کاري دفتر کي د سعودي عربستان له سفير فيصل بن طلق البقمي سره کتلي دي.

د ياد وزارت وياند سميع الله ابراهيمي رسنيو ته ويلي، په دې کتنه کي د دواړو هيوادونو ترمنځ، د شته اړيکو او همکاريو پر پياوړتيا سربېره؛ په سعودي عربستان کي د مېشتو افغان کارګرو د ستونزو او ننګونو په هکله هر اړخيزي خبري سوي دي.

د کار او ټولنيزو چارو سرپرست په دې کتنه کي له افغانستان سره په بېلابېلو برخو کي د سعودي عربستان له مرستو په منني سره، په سعودي عربستان کي د مېشتو افغانانو له غوره کوربتوب څخه خوښي څرګنده کړې.

هغه همدارنګه ويلي، افغانستان د سعودي پانګه والو له پاره مناسب چاپېريال دی او همدارازد سعودي عربستان سوداګريز ۴مخ

## د مطالبو سرليکونه



د طلوع افغان خبري (سرليکنه)

## پر بهرنيو مرستو تکيه؛ ملتونه بيده ساتي!

په نړۍ کي هيوادونه پر دوو کټګوريو وېشل سوي دي، پرمختللي، مخ پر وده او وروسته پاته. نه خو پرمختللو هيوادونو له ازله پخه راوړې او نه هم د وروسته پاته هيوادونو تندی د خوارۍ دئ.

که تاريخونه وکتل سي، پرمختللي هيوادونه خپلو خلکو په زيار او خواريو جوړ کړي دي، د خپلو خلکو له برکته نن ورځ دا هيوادونه د ډېر قوي اقتصاد څښتنان دي، ولس يې آرام او وطن يې په امن دئ.

هند يو مخ پر وده هيواد دئ، اقتصاد يې زيات غښتلی او ورځ تر بلي ډېر پرمختګ کوي، د هند دومره تېز پرمختګ ته چي وکتل سي، سړی حيرانوي. پوښتنه دا ده، چي دا هند د کوم هيواد يا سازمان په بشري مرستو دومره پرمختللی سو، چا دونه کمک ورسره وکړ؟ جواب دا دی، هند د هنديانو له برکته نن ورځ له آسمان سره خبري کوي، د هند لومړی وزير نن ځکه په جګ سر ګرځي، چي د خپل هيواد له موجودو امکاناتو يې ښه ترا استفاده کړې ده، په خپلو خلکو يې خپل هيوادودان او آباد کړی دئ، خپلو ځوانانو ته يې د ځان بسياينې فکر ورکړی دئ.

که چيري هند د نړۍوال بانک، سعودي عرب، اروپايي ټولني او امريکا پوروونو او مرستو ته لاس نيولی وای، نو نن به يې برخليک تر پاکستان لا بدتر وای.

هدف دا دی، چي هيوادونه په بشري مرستو اساسي پرمختګ نه سي کولای، د ملتونو پرمختګ، د دوی په زحمت او خولو تويولو کي نغښتی دئ. همدا څو ورځي مخکي يو خبر خپور سو، چي د امريکا د حکومت نوي رهبرۍ پر افغانستان ټولي بشري مرستي بندي کړي دي، ورسره سم، ځينو بنسټونو دا انديښنه څرګنده کړه، چي د مرستو بندېدل به، د افغانستان وضعيت لا ترينګلی کړي او بشري، روغتيايي او نوري ستونزي به يې زياتي سي.

خو اصلاګدوی ته بايد وويل سي، چي د بهرنيانو په پيسو يو هيواد ثبات او پرمختګ نه سي کولای، پردی کټ تر نيمو شپو وي، يا په بل عبارت مفت (وړيا) شی تر بيه ګران وي.

د افغانستان واکمن او ټول ولس بايد دا په ياد ولري، چي بهرنيو مرستو په دا نيمه پېړۍ کي موږ لا تر پښو غورځولي يو، را پورته کړي يې نه يو. اوس هم بايد بهرنيو مرستو ته هيڅ ارزښت ورنه کړل سي، ټوله توجه دي د افغانستان د خپلو امکاناتو لا پياوړتيا ته وکړل سي، تمرکز دي پر دې وسي، چي څنګه کېدای سي، افغانستان له خپلو موجوده فرصتونو لازمه ګټه ترلاسه کړي او همدغه فرصتونه ښه ترا استفاده کړي.

که ملت وږی وي، دومره ستونزه نه ده، ځکه را ويښ به سي، کار او زحمت به وباسي؛ اما که خدای مه کړه يو ملت مفت خوره سي، بيا يې نو د کار او زحمت خوند نسته.

د هند اقتصاد د نړۍ په کچه درېيم يا څلورم دی، خو ميليونونه خلک يې د سړک پر غاړې شپې سبا کوي، د هند د حکومت دا پاليسي د هنديانو په راويښولو او خوارۍ ايستلو کي خورا کارنده ثابته سوې ده.

اداره

## د امنيت او ملکي خدماتو د لا ښه والي له پاره ناسته وسوه

د کندهار والي د زون په کچه د امنيتي او ملکي مسئولينو سره د امنيت د لا ټينګښت او ملکي خدماتو د لا ښه والي په موخه ناسته کړې ده.

د کندهار ولايت مقام د مطبوعاتي دفتر څخه په خپرو سوو معلوماتو کي راغلي، چي ياده ناسته د کندهار والي حاجي ملا شېرين اخند په مشرۍ جوړه سوې وه، چي په کښې د هلمند والي مولوي عبدالرحمن کندزي ۴مخ

## د کندهار ښار په بېلابېلو ناحيو کي پروژې بشپړې سوي

د کندهار ښار په ميربازار سيمه کي دوې کوڅې جوړې او ګټې اخيستني ته سپارل سوي او همداراز په ديارلسمه ناحيه کي د يو کانال او يو سړک چارې بشپړې سوي دي.

د کندهار ښاروالۍ وياند سيف الله عاصم باختر خبري آژانس ته ويلي، د ښار په ۷ ناحيه، ميربازار کي د ۶۹۰ متره په اوږدوالي او ۵ متره بردوالي سره دوې کوڅې په ۴مخ

## د يو روغتيايي علومو انسټيټيوټ سره تفاهم ليک لاسليک سو

مخي البلال د روغتيايي علومو انسټيټيوټ په اتو روغتيايي څانګو کي په کم فيس محصلين مني.

د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست او البلال روغتيايي علومو انسټيټيوټ ترمنځ، تفاهم ليک لاسليک سو.

د دې علمي تفاهم ليک له مخي د ياد تفاهم ليک له مخي د اطلاعات او فرهنګ رياست اړوند، د ځوانانو چارو آمريت له خوا ۴مخ

## په نهو مياشتو کي تر ۳ سوو زرو زياتي کورنۍ هيواد ته راستني سوي

د کندهار سپين بولدک له لاري په تېرو نهو مياشتو کي د سيمه ييز هيواد پاکستان څخه تر دري سوه زره زيات کډوال خپل هيواد ته راستانه سوي دي.

د کندهار د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو رياست اړوند د کډوالو چارو آمر مفتي نعمت الله الفت د باختر خبري آژانس سره د ځانګړې مرکې پر مهال ويلي، د تېرو نهو مياشتو په لړ کي ۵۸۶۶۳ کورنۍ چي د ۴مخ

## په کندهار کي د ۲۰ جريبه امارتي ځمکي د غصب مخنيوی وسو

د کندهار ولايت په ژړۍ ولسوالي کي د ۲۰ جريبه امارتي ځمکي د غصب مخنيوی سوی دی.

د کرهني، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست مطبوعاتي مسئول محمد حنيف حقمل ويلي، د ياد رياست مسئولينو د ژړۍ ولسوالۍ په لسمه ناحيه کي، د ۲۰ جريبه امارتي ځمکي د غصب مخه نيولې ده.

حقمل زياته کړه، يو ځايي اوسېدونکي غوښتل چي پر ياده ځمکه نا قانونه آباد کړي، چي د ۴مخ

## د غنمو اصلاح سوي تخم او کېمياوي سري مرسته وسوه

۳۰۰ بېوزله بزګرانو سره د غنم اصلاح سوي تخم او کېمياوي سري مرسته وسوه.

د کندهار ولايت په ژړۍ ولسوالي کي د غنمو اصلاح سوي تخم او کېمياوي سري مرسته وسوه.

د کرهني، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست وياند محمد حنيف حقمل ويلي، د کرهني نړۍوال سازمان په مالي ملاتړ، په لوړ شاولي کوټ ولسوالۍ کي له ۱ زر او ۴مخ

## بېلابېل موضوعات

### باسواده باید د ځان بسیاینې فکر ولري

بريالی "فیضي"

کله چې له پوهنځي فارغ کېدلو، د فراغت د مراسمو لمانځغونډه موجوړه کړې وه، ټول ټولګیوال ډېر خوشحاله ول، خنداوې او شور و، زموږ یو ټولګیوال د فراغت د مراسمو پر مهال خپل نیول سوی انځور ټولنیزو رسنیو ته پورته کړ او ورسره وې لیکل، د نن څخه پوره یو کال وروسته یو بې کاره ځوان!

دا هغه ځوان دی، چې دولت ۱۶ کاله مصرف او وړیا تعلیم یې ور باندې کړی، په دیني او عصري علومو یې پوه کړی، آن د پوهنتون تخصصي زده کړې یې په کړې، خو تر دې هرڅه وروسته بیا هم دا ځوان وروسته له ۱۶ کالو پوه نه سو، چې په ټولنه کې کوم خدمت کولای، یا کومه تشه ډکولای سي.

یقیني یم که له دې ځوانه پوښتنه وسي، چې ولې دومره مایوسه ئې! نو حتمًا به درته ووایي، باور نه لري، دنده به پیدا کړي، د دولت څخه به ګیلې درته کتار کړي.

د افسوس خبره دا ده، چې دا محصل تر ۱۶ کلنو زده کړو وروسته، بیا هم د ځان بسیاینې فکر نه دی خپل کړی، بیا هم له نورو دا تمه لري، چې هغه ته یوه دنده ورکړي.

اصلاً خو په کار داده، چې یو باسواده ځوان باید ډېر باجرئته، خپلواک او پر خپل ځان او فکر بسیا وي، همدا تعلیم یافته ځوانان دي، چې په ټولنه کې مثبت بدلونونه راولي، شخصي کاروبارونو ته وده ورکوي، د دولت او نورو ارګانونو پایې ټینګوي.

زموږ ځیني ځوانان له بده مرغه د پورته ذکر سوي محصل په څېر، مظلوم او پر نورو متکي فکر لري، چې دا اصلاً د یو باسواده ځوان سره نه ښایي.

که چیري زموږ ځوانان د دې له پاره زده کړې کوي، چې یوه دنده ور پیدا سي، اصلاً تېروتلي دي، د تعلیم په مرسته دوی په ښه او بد پوهېږي، په ژوند کې د پرمختګ جرئت ترلاسه کولای سي.

هر تعلیم یافته ځوان باید خپل د خوښې وړ مسلک کې دومره ځان پیاوړی کړي، چې په ټوله معنی په دې مسلک کې پوه او باخبره وي، ما داسي ځوانان لیدلي دي، چې یو پوهنځي په دې بېره نه وایي، چې ممکن کاري ساحه یې کمه وي، خو داسي ځوانان مي هم لیدلي دي، چې همدا پوهنځي یې ویلې، د خپل مسلک مطابق ډېر غوره دنده یې پیدا کړې وي، خو صرف خبره داده، چې تعلیم یافته ځوان باید هیڅکله مایوسه نه سي، بلکي دونه زیارکښ سي، چې ټولنه ده ته اړتیا پیدا کړي.

ځیني تعلیم یافته ځوانان وایي، په افغانستان کې د تعلیم ارزښت نسته، که په خارج کې وای، نو ښه پرمختګ به یې کړی وای، خو زما تاکید دادی، چې همدا خارج چې نن څونه پرمختللی دئ، همدا د تعلیم یافته ځوانانو برکت و، که چین دئ، که هند؛ د خپلو تعلیم یافته ځوانانو له برکته یې دونه پرمختګ کړی دی.

موږ هم باید داسي فکر ولرو، چې زموږ هیواد تر بل هرچا خپل باسواده قشر ته ډېره اړتیا لري او یوازې په موږ را پورته کېدای سي.

زه خو وایم، یو وران ویجاړ ملک ته تعلیم یافته ځوان تر بل هرچا ډېر مهم دی، ځکه همدا وران ویجاړ ملک د تعلیم یافته ځوان له برکته را پورته او پر پښو درېدلای سي، نو زموږ ځوانان باید پوه سي، له حکومته د ګیلو پر ځای دي عملاً لاس په کار سي، ځانونه دي وروزي، ملک دي خپل کور وګڼي، د جوړولو او آبادولو له پاره دي یې خولې توی کړي، اروپا او امریکا ته د تګ خوبونه دي له سره وباسي.

---

## لیکوالان باید کوم کتابونه ولیکي؟

حسان مجاهد

هر لیکوال چې پر یوه موضوع کتاب لیکي، لویه موخه یې دا وي چې مسلمانان ګټه ځني ترلاسه کړي او په ټولنه کې د ستونزو په هوارولو کې کار ځني واخیستل سي.

که موږ تېر تاریخ ته وګورو، چې د اسلام په وړاندې کومې فتنې را پورته سوي او مسلمانان له کومو ننګونو سره مخامخ سوي دي، نو د هغه عصر علماوو او لیکوالانو د قلم په څوکه مبارزه پیل کړې ده، د فتنو، خرافاتو او فسادونو مخنیوی یې کړی دی، چې خپلو هڅو یې رنګ راوړی، مثبته نتیجه یې ور کړې او په مټ یې مسلمانانو نجات موندلی دی.

کله چې د اتلسمې پېړۍ په وروستیو کې مسیحیت ته په پراخه کچه دعوت روان و او نژدې وه چې په عربي او عجمي نړۍ کې مسیحیت دومره خپور سي چې د اسلام ځای ونیسي، نو هم مهاله د هند پیاوړي عالم مولانا رحمت الله کیرانوي (رحمه الله) د "اظهار الحق" په نامه یو کتاب ولیکی، چې په مسیحیت او عیسوي مذاهبو یې داسي نیوکې وکړې چې تر ننه یې د مسیحیت پوهان له جوابولو عاجز پاته دي او انګرېزانو په خپلو اخبارونو کې پر دې اعتراف وکړ چې تر کومه وخته د دې کتاب "اظهار الحق" د چاپ کار روان وي، عیسویت ته تبلیغ هیڅ امکان نه لري.

همداراز کله چې مشهور مصري مسیحي ادیب جرجي زیدان د "تاریخ التمدن الاسلامي" په نامه یو کتاب ولیکی او پر اسلام باندې یې په داسي مهارت حمله وکړه چې د کتاب د لوستونکو په فکر به اسلام له حق څخه لیري یو داسي دین بریښېدی چې د انساني ژوند د هیڅ ډول ګټو صلاحیت نه لري، خوسمدستي علامه شبلي نعماني رحمه الله د هغه په رد کې د "الانتقاد علی تاریخ التمدن الاسلامي" په نامه کتاب ولیکی او مسلمانان یې له هغه خطره وژغورل چې د یاد کتاب له کبله ور سره مخامخ ول.

په نننۍ زمانه کې د کتاب لیکني پروسه ډېره په چټکۍ سره روانه ده، زیات شمېر کتابونه لیکل کېږي او بازارونو ته وړاندې کېږي، خو که څوک په دقیقه توګه نظر پر وکړي، نو په سلو کې پنځو کتابونو د ټولني درد دوا کړی و، د دنیوي او اخروي ستونزو حللاره یې روښانه کړې وه، پاته نور د هیڅ درد دوا نه دي، بلکي ډېر کتابونه پر ځای د دې چې ګټه ځني پورته سي، د مسلمانانو په ځانګړې توګه، د ځوان نسل له پاره د بې لاریتوب سبب ګرځي، لکه: عشقي ناولونه، کیسې، ناوړه شعرونه او له حقیقته لیري تاریخي یادونه.

ځیني کتابونه بیا پر داسي موضوعاتو لیکل سوي، چې لوستل یې لوستونکي له مهمو دیني، تاریخي او کلتوري کتابونو را ګرځوي.

نو په نننۍ زمانه کې هر هغه چاته چې د لیکوالۍ وړتیا لري او د مسلمانانو غم ور سره وي، باید داسي کتابونه ولیکي چې د لوستونکو ذهني خلا په ګټورو معلوماتو ډکه سي، د معاصرو فتنو، الحاد او غربي دسیسو څخه مسلمانان را وګرځوي، ځوان نسل ته له انحراف او ګمراهیو نجات ورکړي او له حقه د دفاع او باطل په وړاندې د مبارزې په برخه کې ګټور تمام سي، که څه هم پر لیکلو یې ډېر وخت ولګېږي، څو تر شا یو داسي اغېزمن اثر پرېږدي چې تلپاته ګټه ځني واخیستل سي او تر پېړیو – پېړیو د لیکوال نوم ژوندی وساتي.

نن – سبا پر اسلام نیوکې کېږي او کفار غواړي مسلمانان له دینه واړوي او پر خپلو اسلامي ارزښتونو یې بې باوره کړي، نو ځکه لیکوالان باید د هر ډول کتاب تر لیکلو تېر سي او اهمو مطالبو ته اولویت ورکړي.

د افسوس ځای خو دادی چې په لوېدیځ کې که یو ځوان له پوهنتونه فارغېږي، نو مشران ورته وایي: چې له موږ سره به د اسلامي امت په ګمراه کولو کې برخه اخلې او خامخا به په کال کې یوه میاشت، یا په میاشت کې یوه اونۍ، یا په اونۍ کې یوه ورځ له موږ سره د دعوت په برخه کې همکاري کوې! او زموږ ځوانان چې له پوهنتونه فارغ سي، یا ناول ولیکي او یا د یو انګرېز کتاب وژباړي.

---

## د خوشحالۍ ښکارندويي

مولوي نور الحق "مظهري"



دا چې تر ۱۵ میاشتو کړاوونو او بمبارېو وروسته، د غزې پر مسلمانانو آرامي راځي او له غاصبو اسرائیلو سره د یو تړون له مخې اوربند اعلانېږي، لویه بریا او زېری دی او په حقیقت کې د حماس مجاهدینو کامیابي ده، موږ یې په راتللو خوشحاله یو او د غزې ټول مسلمان ولس ته یې مبارکي وایو.

دا په اصل کې د دوی د جهاد برکت او د شهیدانو د وینو تأثیر و، چې د الله تعالی نصرت یې په برخه سو او د نړۍ لوی بدمعاش یې په وړاندې ماته وخوړله. دا معلومه خبره ده چې په لویه کچه د فلسطینیانو شهادت، د مشرانو تلل او د ښارونو ورانېدل، ظاهراً لوی تاوان دی، خو د اسرائیلو غوندې لوی ښامار تسلیمېدل او اوربند منل، هغه لویه لاس ته راوړنه ده چې نه یوازې د اسرائیلو، بلکې د امریکا، بریتانیا، فرانسې او نورو هغو هیوادونو چې د اسرائیلو مرسته یې کوله، د ماتې او شکست معنی لري.

الله تعالی دې دا اوربند د غزې له پاره د دوامداري صلحې او پوره پرمختګ پیلامه وګرځوي او الله تعالی دې اسرائیل او د هغوی مرسته کوونکي هیوادونه په ټولو ډګرونو کې نور هم شرمنده او ناکام کړي.

---

## زموږ له منځه تللي کندهاري لیکوالان او شاعران

ظاهر جان "څرک"

د کندهار هغه معاصر او ځیني مخکني لیکوالان او شاعران چې اوس زموږ په منځ کې نسته، الله جل جلاله دي ټول وبخښي.

علامه عبدالحی "حبیبي"
علامه عبدالشکور "رشاد"
عبدالرؤف "بېنوا"
ملا جانان اخند
ډاکټر عبدالرازق "پالوال"
شیخ صاحب عبدالغفور "خروټی"
محمد حلیم "سلیمي"
مولوي صالح محمد "هوتک"
محمد یوسف "ویران"
عبدالهادي "ریشا"
عبدالباري "آشنا"
عبدالرحیم "هاتف"
محمد انور "نومیالی"
محمد نادر "ایوبي"
غلام محی الدین "ایوبي"
محمد ظاهر "افق"
محمد علم "بڅرکی"
مولانا محمد شریف "حبیبي"
محمد رفیق "حبیبي"
محمد ابراهیم "خواخوږی"
محمدولی "ځلمی"
محمد حسین "طالب"
محمد ابراهیم "عطایي"
خواجه محمد "زهیر"
سردار محمد "زهیر"
عبدالهادي "داوی"
مولوي عبدالغفار "بریالی"
ملا محمد عیسی
عبدالحکیم "شیدا"
عبدالله "نورزی"
آغا محمد "کرزی"
عبدالخالق "واسعي"
مولوي محمد ویس "کاکړ"
غلام نبي "هوتک"
محمد ګل "نوري"
محمد نسیم "نوري"
عبدالصمد "ویسا"
محمد رسول "مسلم"
سید احمد "بېزار"
صوفي عبدالحمید
امین الله "زمریالی"
محمد حسین "رېدی"
محمد اسماعیل "زاهل"
محمد اعظم "ایازی"
ملا عبدالمنان اخند
ملا محمد عمر اخند د شاه قبر
ملا میر یحیی
ملا میران
سید عبدالخالق آغا
ملا محمد انور
شمس الدین "کاکړ"
پیر محمد "کاکړ"
مهردل خان "مشرقي"
ملا رحمت الله بابا
عبدالله "محزون"
صدیق اخند زاده
حنان "بارکزی"
محمد امین "عندلیب" د
محمود "طرزي" ورور
محمود "طرزي"
حاجي ولي محمد "مخلص"
عبدالرؤف "مخلص"
عبدالسلام بابا د کرز
ملا محمد حسن اخند د
تلوکان
عبدالمجید "بابی"
فضل محمد "پنهان"
عبدالهادي "هاند"
عبدالقدیم "پتیال"
ملانور ساعت‌ساز "میانی"
عبید الله "ځګرخون"
ګلبیدار
عبد الله "خیال"
عبد الله "ستوری"
عبید الله "دلرېش"
عبدالکریم "رسوا"
کریمه "فیض زاده"
علی محمد "رسولي"
بشیر احمد "بشارت"
ګران آغا "الفتیار"

# د شیطان لښکر

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

(۱۰۲) برخه

د کفري هیوادونو په مسئلو کې تر ټولو لومړی همدا مسئله راپورته کېږي چې د مسلمانانو له پاره په دې هیوادونو کې د قیام او هستوګنې څه دی؟ د مسلمانو هیوادونو هغه مسلمانان چې خپل هیوادونه یې پرې ایښي دي او په کفري ملکونو کې آباد دي او بیا یې وطن ته د راتلو نیت نسته، د هغوی له پاره دا مسئله ډېره مهمه ده چې آیا د اسلامي نظام څخه وتل او په غیر اسلامي نظام کې پناه اخیستل، همدا راز د مسلمانانو د پاچهي له دایرې وتل او د کفارو حاکمانو تر واک لاندې اوسېدل قبلول په شریعت کې اجازه لري او که نه؟

دا پوښتنه ډېره پخوانۍ ده، د آئمه اربعه په وخت کې هم دا مسئله تر بحث لاندې راغلې ده، خو د حالاتو په توپیر سره اوس د مسئلې هغه حساسیت نه دی پاته چې پخوا به و.

د مسئلې دوه بنیادونه:

د دې مسئلې د شرعي حکم معلومولو له پاره دوه بنیادونه ته کتل مهم دي:

۱ - په کوم کفري هیواد کې چې مسلمان هستوګن دی یا د هستوګنې اراده لري، په قانوني او سیاسي توګه د یو مسلمان له پاره هلته څه صورت حال دی؟ د چاپېریال په توپیر سره په حکم کې به هم فرق راځي.

۲ - هلته د هستوګنې سبب او لامل څه دی؟ د سبب په اختلاف سره به هم حکم مختلف کېږي.

د کفري هیوادونو ډولونه:

لومړی به هغه خبره کوو چې فقهاء کرامو د ارزښت په سترګه ورته کتلي دي، فقهاوو کفري هیوادونه پر درو ډولو وېشلي دي او د هغو درې سرو یې بېل - بېل احکام بیان کړي دي، د فقهي په کتابونو کې د دې مکمل تفصیل سته، موږ به یې دلته د اړوند بحث لنډیز را واخلو:

۱ - لومړی ډول:

هغه کفري هېوادونه چې هلته د یو مسلمان په حیث ژوند تېرول مشکل وي، د خپل او د نسلونو د دین، ځان، مال، عزت او آبرو ته سخت خطر وي، د دین او د نسل د حفاظت هلته هیڅ ضمانت نه وي، مذهبي آزادي نه وي، په دین باندې عمل کول ممکن نه وي، هلته چاپېریال داسې وي، لکه د مدینې تر هجرت وړاندې چې و.

داسې ملکونو ته تلل یا هلته هستوګن کېدل د یو مسلمان له پاره د ټولو فقهاوو په آند روا نه دي، بلکې چې کوم خلک هلته له پخوا څخه آباد دي، که هغوی دا توان لري چې یو مسلمان هیواد ته هجرت وکړي، نو پر دوی باندې هجرت کول فرض دي.

شوافعو له دې حکم څخه هغه مسلمانان مستثنا کړي دي چې د هغوی هلته پاتې کېدلو کې د مسلمانانو مصلحت پټ وي او د ایمان له حفاظت سره سره، د کفارو له لوري د راتلونکو ستونزو او خطرو سره مبارزه هم کولای سي، د داسې خلکو له پاره په کفري هیوادونو کې هستوګنه نه یوازې جایز بلکې یو ښه عمل دی.

دلیل:

په اصل کې د دې مأخذ دا آیت دی:

ژباړه: بې شکه هغه خلک چې پر خپل ځان یې ظلم کړی دی، کله چې فرشتې د دوی روح قبضوي، نو دوی ته به وایي: تاسو په څه کار کې واست؟ دوی به ووایي: موږ په هغه هیواد کې وس نه درلودی (کمزوري وو) فرشتې به ووایي: آیا د الله تعالی مځکه پراخه نه وه چې تاسو په کښې هجرت کړی وای؟ نو همدا خلک دي چې ځای به یې دوږخ وي او هغه ډېر بد ځای دی.

(۹۷) سورة النساء

په دې آیت کې په هغه مځکه کې هستوګنې ته ظلم او لویه ګناه ویل سوي دي، چیرې چې انسان د خپل دین او ایمان ساتنه ونه سي کړای، خو په دې شرط سره چې انسان له هغه ځایه د هجرت او یو مناسب ځای کې د هستوګنې توان ولري.

داسې هیواد ته د تللو او هلته د اوسېدلو به څه جواز وي.

۲ - دوهم ډول:

هغه کفري هیوادونه چې هلته په آزادانه توګه په دین باندې د عمل کولو اجازه نه وي، مسلمانان هلته د کمزوري اقلیت په څېر ژوند تېروي، هلته د مسلمان په مال، ځان او عزت باندې د خطرې وربځې ګرځي او راګرځي، خو دوی هلته په هستوګنه باندې مجبور ځکه دي چې د دوی له پاره د هجرت بل ځای نسته، یا د هجرت خرڅ ورسره نسته، نو پر داسې مسلمانانو باندې بالاتفاق هجرت واجب نه دی او په هغو ملکونو کې د دوی له پاره هستوګنه د ګناه خبره نه ده.

دلیل:

د دې حکم مأخذ هم د پورتني آیت وروستۍ برخه ده:

ژباړه: پر ته له هغو کمزور سړیو، ښځو او ماشومانو څخه چې نه څه تدبیر جوړولای سي او نه لاره مومي، نو دا خلک داسې دي چې الله تعالی به بخښنه ورته وکړي او الله تعالی زیات عفوه کوونکی او ډېر بخښونکی دی.

نور بیا...

# له کندهاره تر نورستانه

حبیب الله "قلم مل"

لومړۍ برخه

تر لوی اختر یوه اوونۍ مخکې د جمعې ورځ په مېله وتلي وو، په عېنو مېنه کې د لویې ویالې پر غاړه د نساجي له پله سره د وُلو ډېره ښایسته سایه وه، ملګري سره راغلل، د اختر د مېلې خبره یاده سوه، فیصله پر دې وسوه، کابل او بیا نورستان ته ځو، د ملګرو لیست جوړ کړل سو، چې دیارلس تنه سول.

تر یو څو مودې وروسته یو ملګري ټیلیفون وکړ، چې زما نوم له لیسته وباسه، موږ او تاسو خو نه خبر یږو، پر لاري هره ورځ پېښې کېږي.

تر دې وروسته بل زنګ راغلی او راته و یې ویل، ماته عفوه وکړئ او د پاته کېدو عذر یې معقول و.

بل نفر چې تر آخري ورځ پوري یې وعده کړې وه، هغه او یو بل نعت خوان چې همېشه به یې ګیله کوله چې تاسو پر ما بړغ نه کوی، په تأسف سره چې هغه هم د کورنۍ موافقه تر لاسه نه کړه او دغسې نا امیده پاته سو.

د دیارلسو څخه اته کسان سفر ته آماده سول.

له کوره را روان سولو، کله چې د ښکارپور دروازې چوک ته را ورسېدو، عسکر د لاس په اشاره د درېدو وویل.

عسکر د استاد څخه وپوښتل چې یوه پوښتنه در څخه وکړم، خوا خو به نه بدوې؟

استاد ورته وویل: نه!

هغه وپوښتل څو کاله دې د استادۍ کېږي؟

ده یو څه د غرور په لهجه ورته وویل: اووه کاله!

هغه ورته وویل: د موټر بتۍ دې ډیم کړه، په سترګو دې شبکوره کړم.

له عسکره مو اجازه واخیسته

د اوږده سفر په تکل مو اوږده دعا وکړه او مخ پر کابل روان سولو، دسهار لمونځ مو د اخند صاحب زیارت ته نژدې د لاري په یو مسجد کې ادا کړ.

اوږد سفر دی، طبعي خبره ده، چې موضوعات په کښې راځي، لکه: علمي، سیاسي، ټولنیز او ټوکیز.

په دې حال کې د لوی امپراتور احمدشاه بابا د یادګار ځلي (غشي منار) ته ورسېدلو چې لمر خپلې زرینې وړانګې لکه: د ناوي زرین شال، د مځکې پر مخ را خپرې کړې.

دا ځلی په ښار صفا (شهرصفا) کې د سړک راسته لاس ته د ترنک د رود پر غاړه په عظمت ولاړ دی او موږ ته د حال په ژبه د خپلو مشرانو مېړانه، خپلواکي او کارنامې بیانوي.

د ملګرو داسې خوښه وه چې لږ وخت به دلته تم سو او د دې فضا څخه به نور هم خوند واخلو. د ځلي په اړه ځکه ډېر نه ږغېږم چې زما سره زیات معلومات نسته او بل لوستونکي باید په دې اړه علیحده او جلا مطالعه وکړي.

تر ځلي لیدني وروسته مو بیا په سفر پیل وکړ

پر لاري خورا ډېر د خټکیو پالېزونه ووا او له ورایه معلومېدل، چې خټکي یې زیات کړي دي، خوشحاله سوم چې زموږ هیواد له هر طرفه ځپل سوی دی، ګوندې په کښت او کروندې یې لږ اقتصاد پیاوړی سي او د غربت لمنه ورټوله کړي.

د سفر په حالت کې هر لوري ته کتل جلا کیف درلودی او هر طرف د سبا د ښې راتلونکي خواږه رابخښل.

په دې وخت کې د قلات بابا تر زیارت پوري ورسېدو او د زابل ولایت په بازار کې مو د سهارنۍ ناشتې له پاره خوراکي مواد او نور اړین د سفر توکي رانیول.

اوس نو په دې لټه کې یو چې چیري یو ښه د ناستې ځای پیدا کړو. د قلات بازار په هغه بل سر کې خورا ډېر خټکي او هندوانې اړول سوي وو.

کله چې د زابل له بازاره ووتو، د سړک په راسته لاس کې د انګورو باغونه او اوبه وې، یو ځای ښه د توتانو تکیه په مخه راغله، موټر مو ورته ودراوه، فرش او د مېلې سامان مو را کښته کړ.

چای او ناشته مو وکړه، خو یوه خبره چې باید یادونه یې وسي، هغه دا چې بوره مو هېره سوې وه، هر یوه ویل اوس به څه کوو؟! دا خو غټه نیمګړتیا ده.

هلته لیري یوه بله ډله کندهاریان ناست ول، هغوی هم په مېله راوتلي ول، له هغوی څخه مو یوه اندازه د بورې مشکل حل کړ.

موږ ناست یو، خپلې چای څښو، چې ناڅاپه یو کلیوال راغلی او زموږ سره کښېناستی، دا چې دا به څوک او څه هدف به یې درلودی.

زموږ د ملګرو د هر یوه په ذهن کې داسوال و چې دا کلیوال به څوک وي؟ څه به غواړي؟ خو کلیوال نادري سړی و.

هغه په دې چې: نه قوماندان او نه بل لوړ پوړی چارواکی تېر سوی و. په دې ساده کلیوال ژوند کې یې دونده ښه هنر درلودی چې سړی یې قانع کاوه، غوره اخلاق، ښه مجلس او تر ټولو ښه رویه یې دا وه، چې د ظاهر شاه په وختکې یې تر درېیم صنف پوري درس ویلی و، خو خط یې درلودی. نور بیا...

## شعر او آدب

# د طلوع زرینې وړانګې

## غزل

فضلي شاه "مغفور"

د بې وفا دنیا ذوقونه به یو دم فنا سي
غم و ښادي به سرنګون سي ټول به سم فنا سي

***

یو نری تار دی چې هیڅکله جلاوالی نه کړي
نوري رشتې به د هجران په بړغ برهم فنا سي

***

راسئ چې زړونه کړو بسته له هغه یاره سره!
چې یې د «کُن» په امر ټول موجود عالم فنا سي

***

په دغه لس ورځې غرور کې به ته څه کړې پیدا
نمرود وګوره چې د ژوند یې شان و برم فنا سي

***

د عاجزۍ پر میکده د موسی لار لټوه!
د فرعون فوج به له قارون سره په غم فنا سي

***

د انسانیت په مدرسه کې نوم لیکنه وکړه!
وخت دی تېرېږي ژر به دا کتاب قلم فنا سي

***

د معنویاتو په نړۍ کې سیاحت شروع کړه!
چې د خبیث لعین دامونه و هر چم فنا سي

***

د توبې مَی د عشق په جام کې نوشوه "مغفوره!"
د مرګ په لومه کې به هر څه په ماتم فنا سي

## غزل

محمدالله عبرت

کوم وخت نه چې تا غېږ کې نیولی یم بېلتونه!
وځي مې د خولې پر ځای د سترګو څه آهونه

***

عشقه ته عجبه نابلده شان موجود ئې!
هم دي دوږخې کړم هم دي راکړل جنتونه

***

شین آسمانه زړه مې در ختل غواړي په دې چې
وګورم د خپل خدای ج بې شماره تخلیقونه

***

بخته خاص زما د منافق یار په رقم ئې!
نه دې خوښې راکړه نه دې کم کړه زما غمونه

***

ځان سینګارول هم ډېر هنر غواړي "عبرته!"
ستوري په آسمان کې ګوره مځکه کې قبرونه

## مقام

مغفورالله "شهیدزی"

د تندیو سپېړ پدل دي سجدې نه دي
ذوالجلال سره پر ځای مو وعدې نه دي

***

د توبې پر وخت مو هم ګناه ته نیت وي
دا زموږ توبې چندانې توبې نه دي

***

مرغلري او ښکې توی په ګرېوانه کړو
چې د خدای له پاره نه وي دا ښې نه دي

***

په ظاهره خو ښه سم بزرګ ښکارېږو
خو صفا زموږ د زړه آینې نه دي

***

تزلزل کوي په یوه بله خواوړي
پخې سوي په رښتیا عقیدې نه دي

***

ږیره لنډه بربېت اوږده پتلون په پښو کې
دا خو هیڅ د مسلمان علامې نه دي

***

پرې دا خلک خطا باسو محترمه!
د خدای ذکر ته مو جوړې تسپې نه دي

***

ته هم بخښه له خالق غواړه "مغفوره!"
د حسان غوندي داستا ترانې نه دي

Toto E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، دلیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلې پاڼې بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګډون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کې ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمریزکال په آخرکي د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼې یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کې ګډون وکړئ.

د ګډون کلنی بیه ۵۰۰- پنځه سوه افغانۍ، زده کوونکو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندې کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده. اداره

مســـــئول مـــدیر : ـــــــ بـریـالـــی "فیـضـي"
د تصـحیح مسئـــول : ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"
کمـپوز او ډیــــزاین : ـــــــ نصیر احمـد "صــابر"
د مـــــدیریت شمېره : ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزیع مدیریت شمېره : ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پتـــه : ـــــــ علامه حبیبي واټ –اطلاعات او فرهنګ ریاست
د برېښنالیک پته : ـــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 — ISSue: 65 — Established in 1300 Hijri



# په ټولنه کې کلتوري اغېزې

صابر جان محصل

کلتوري او فکري رنګونه د یوې ټولنې هغه مهم عناصر دي چې د ژوندانه د طرز، عقایدو، ارزښتونو، دودونو، عنعناتو، هنرونو، ادبیاتو، ژبې، مذهب او ټولنیزو اړیکو مجموعه ده. دا هغه ټولنیز نظام دی چې د خلکو د ژوند طرز تنظیموي او له نسله تر نسله انتقالېږي.

په اوسني عصر کې چې څومره د تخنیک، علم او ټکنالوژۍ ګړندی یون پر مخ روان وي، په همغه اندازه به د نړۍ د تمدنونو او ټولنو ترمنځ، د فرهنګونو، افکارو او عقایدو اختلاط رسېدل او مقابله ګړندۍ کېږي، هر څوک به هڅه کوي، تر څو خپل افکار، تجربې، ثقافت او فرهنګ ډېر په ښېړه د نورو لاس ته ورسوي او هغوی په قانع کړي، څوک چې په دې مسابقه کې ګړندي ګامونه اخلي او لاس په کار دي، هغوی به تر نورو مخکې خپل هدف ته رسېږي او څوک چې لاس تر زنه ناست وي، هغوی به د کلتوري توپانونو په ګردابونو کې را ایسار وي.

موږ افغانان هسې هم په دې سیالۍ کې ډېر وروسته پاته یو، نورو ته د خپل ثقافت رسول، خو لا څه چې په دې فرهنګي جګړه کې د ځان ساتلو توان هم نه لرو، له بده مرغه د خپل اسلامي فرهنګ د سم پېژندلو فرصت هم چا را نه کړ، له بلې خوا د عصري علومو، ټکنالوژۍ او د هنرونو له کاروانه هم ډېر وروسته پاته یو، نو ځکه ډېر ځله د ښه او بد تمیز را څخه ورک سي، د خوږو او ترخو مزه را څخه هېره سي، دومره خوش باوره یو چې هر دښمن مو په دوستۍ کې وهي او د هر چا خبري ته د هو سر ښوروو، د دې له پاره چې خپل اصیل اسلامي فرهنګ او د ژوند حقیقي لاره مو ورکه کړې نه وي، په دې پردي ثقافتي یرغل کې یوه کوچنۍ وسله له ځان سره ولرو، په کار ده چې لومړی د شریعت په چوکاټ کې له افغاني دودا و کلتوره ځان خبر کړو، ساتنه، د پردیو افکارو او دودونو مخنیوی وکړو.

ځوانه ټولنه مو په علمي مرکزونو کې پر ځای د دې چې علمي پرمختګ، نوښتونه او اختراعات رامنځته کړي، فېشن را څخه یرغمل کړي او په اجتماعي نړۍ کې ګېمونو او ټیک ټاک قېمتي وختونه ترې سلب کړي، تر څو چې دا علمي او ځوان کهول د فېشن له یرغمل او په ټولنیز نظام کې د پردي کلتور له اغېزو، انحراف او عبثیاتو خلاص سوی نه وي، د پرمختګ خیال محال دی.

**(۱) مخ پاته: ملا عبدالمنان عمري: سعودي...**

مارکېټ د افغانستان د کرهنیزو محصولاتو له پاره غوره بازار دي.

عمري د سعودي عربستان له سفیره غوښتنه وکړه، چې هغه هیواد ته د افغاني کرهنیزو محصولاتو او مېوو په مخامخ صادراتو کې هڅه وکړي.

په ورته وخت کې د سعودي عربستان د شاهي هیواد سفیر فیصل بن طلق البقمي خپلو خبرو کې د دواړو دوستو هیوادونو ترمنځ، دوستانه اړیکي تاریخي بللي او ویلي یې دي، هیواد یې هوډ لري، څو له افغانستان اسلامي امارت سره یادي اړیکي په اقتصادي، سوداګریزو او سیاسي ډګرونو کې لا زیاتي پیاوړي کړي او په سعودي عربستان کې یې د مېشتو افغان کارګرو د ستونزو او ننګونو په حل کي هم د همکارۍ ډاډ ورکړی دی.

دیادوني وړ ده، چې د کار او ټولنیزو چارو وزارت سرپرست تر دې وړاندې هم د قطر، روسیې او یو شمېر نورو هیوادونو له استازو سره په هغو هیوادونو کې د مېشتو افغان کارګرو او سوداګرو پر ستونزو او غوښتنو رغېدلی و.

**(۱) مخ پاته: د امنیت او ملکي خدماتو...**

د زابل والي مولوي حزب الله افغان او د روزګان والي مولوي عنایت الله شجاع تر څنګ، یو شمېر نورو مسئولینو هم ګډون کړی و.

په دې ناسته کې د نورو ولایتونو والیانو له کندهار والي سره د خپلو ولایتونو د امنیتي او ملکي چارو اړوند راپورونه شریک کړل.

د والیانو د راپورونو تر شریک کولو وروسته په دې ولایتونو کې د امنیت د لا ښه ټینګښت، د نشه یي توکو د کښت او قاچاق د مخنیوي او له منځه وړلو تر څنګ، د ملکي چارو د لا ښه سمون په اړه هر اړخیزه بحث وسو.

**(۱) مخ پاته: د کندهار ښار په بېلابېلو...**

په اساسي ډول جوړي او ګټې اخیستني ته وسپارل سوې.

د عاصم په قول، پر یاده پروژه باندي ۱۸ میلیونه افغانۍ لګښت راغلی چې د کندهار ښاروالۍ له انکشافي بودجې څخه ورکول سوې او د دې پروژې پاته برخي به د ښار په نورو ناحیو کې ډېر ژر بشپړې او ګټې اخیستني ته وسپارل سي.

د بل خبر له مخې د کندهار ښاروالۍ ویاند سیف الله عاصم ویلي، د ښار په دیارلسمه ناحیه، درېیم ګذر، میرزا احمد خان کلاچه کې، د ۳۳۷ متره په اوږدوالي، دوه نیم متره بردوالي سره کانال او د ۱۳۹ متره په اوږدوالي او څلور متره بردوالي سره سړک په اساسي ډول جوړ او ګټې اخیستني ته وسپارل سو.

دا کانال او سړک د کندهار ښار د انکشافي کارونو په لړۍ کې دی، چې په درو میاشتو کې جوړ او ګټې اخیستني ته وسپارل سوا و په یاده پروژه کې هره ورځ ۱۱۷ کسانو ته د کار کولو زمینه برابره سوې وه.

**(۱) مخ پاته: د یو روغتیایي علومو...**

البلال د روغتیایي علوموانسټیټیوټ ته په عالي نرسینګ، درمل جوړونه، طبي لابراتوار، د غاښو پروتیز، رواني روغتیا، تغذیه، انستیزیا او راډیولوژي څانګو کې ۱۰۰ تنه ځوانان ور معرفي کوي.

البلال د روغتیایي علوموانسټیټیوټ به یاد شمېر ځوانان هر سمستر په ۱۵۰۰ افغانۍ جذبوي، چې فیس به یې د محصلینو له خوا ورکول کېږي.

**(۱) مخ پاته: په نهو میاشتو کې تر...**

غړو شمېر یې ۳۰۹۳۰۱ تنو ته رسېږي، د سپین بولدک له لاري خپل هیواد ته راستانه سوي دي.

د الفت په وینا، له هري کډوالي کورنۍ سره د افغانستان اسلامي امارت له لوري ۱۰۰۰۰ افغانۍ، خوراکي توکي، د روغتیا له پاره درمل، واکسینونه او د انځرګي په پنډغالي کي چي په ټولو لومړنیو اړتیاوو سمبال دی، ورته د ژوند کولو زمینه برابره سوې او همکارو مؤسسو ته د لا زیاتو مرستو په موخه ور معرفي سوي دي.

په بیرته راستانه سوو مهاجرینو کي ډېری یې د کندهار، هلمند، روزګان، زابل او فراه ولایتونو دي، چې خپلو ولایتونو ته په لېږد کې یې اسلامي امارت د همکاره مؤسسو په مالي همکارۍ، هري کورنۍ ته د هغوی د اړتیاوو او ولایتونو ته په کتلو سره کرایه ورکړې او د دائمي اوسېدني له پاره د شیخ صاحب حفظه الله په ځانګړي امر د کندهار ولایت په دامان ولسوالۍ کي پر ۶۰۰۰ جریبه مځکه د ښارګوټي جوړولو چاري رواني دي، چې په لومړي پړاو کې یې پر ۱۵۰۰ جریبه مځکه د اول فاز کارونه جریان لري، چې په کښې په ټولو اړتیاوو سمبال ۷۹۲ نمرې ډیزاین سوي او د ۲۵۰ څخه زیاتو کورنیو ته د نمرو وېش تر سره سوی دی او د کندهار په ښورانډام صنعتي پارک کې کسب لرونکو کسانو ته کوچني کاروبارونه، بزګرانو ته عامه پوهاوی، د خیاطۍ، مربا جوړولو او نورو کسبونو له پاره لنډ مهاله حرفوي مرکزونه جوړ سوي او د کار په موخه کارخونو ته ور پېژندل سوي دي او د دې تر څنګ، په کندهار کې د همکارو مؤسسو له لوري ۱۳۰ زیانمن سوو کډوالو کورنیو چې هري کورنۍ ته ۳۸ زره افغانۍ، ۸۰۲ زیانمن سوو کورنیو له پاره هري کورنۍ ته ۸۸۰ امریکایي ډالر او همداراز ۳۰۹ کرایه کورونو له پاره هري کورنۍ ته ۱۱۵۰۰ افغاني مرسته ورکړل سوې ده.

د یادوني وړ ده، چې د بیرته راستنو سوو مهاجرینو کورنیو کوچنیانو ته د ښار په بېلابېلو ښوونځیو کې د زده کړو او په روغتیایي مرکزونو کې د درملني زمینه ورته برابره سوې ده.

**(۱) مخ پاته: په کندهار کې د ۲۰...**

یادې ولسوالۍ د امنیتي ځواکونو او د کرهنې ریاست د مسئولینو په ګډه همکارۍ یې مخه ونیول سوه.

د یادوني وړ ده چې تېره اوونۍ هم د کندهار ولایت په درو ولسوالیو کې د ۷۴ جریبه امارتي مځکي د غصب مخه نیول سوې وه.

**(۱) مخ پاته: د غنمو اصلاح سوي...**

د هغه په خبره، له هر بزګر سره ۵۰ کېلو ګرامه د غنمو اصلاح سوی تخم، ۵۰ کېلو ګرامه سپینه سره او د ۵۰ کېلو ګرامه توري سرې مرسته تر سره سوې ده، چې په دې سره به د بزګرانو په کښت کې د پام وړ زیاتوالی راسي.

# د یو ترمینل جوړولو چاري پیل سوې

د فراه ولایت د ابونصر فراهي په بندر کي د ۴۰ میلیونو افغانیو په لګښت، د بار وړونکو موټرونو له پاره د یو معیاري ترمینل جوړولو چاري پیل سوي دي.

د فراه ولایت د مځکني ترانسپورټ د تنظیم رئیس مولوي سید احمد ساجد چاري پیل سوي، چې په ۶ میاشتو کي به یې چاري بشپړې او ګټې اخیستني ته وسپارل سي.

د هغه په خبره، د دې ترمینل په جوړېدو سره به سوداګرو او موټر چلوونکو ته ګڼې اسانتیاوي رامنځته سي.

په ورته وخت کي موټر چلوونکي د دې



باختر آژانس ته ویلي، په دې ولایت کي د بار وړونکو موټرونو له پاره د ۴۰ میلیونه افغانیو په لګښت، پر زر جریبه مځکه د یو معیاري ترمینل د جوړولو ترمینل د جوړولو له پیلېدو خوښي څرګندوي او وایي، دا به د دوی له پاره د تګ او راتګ په برخه کي ډېري اسانتیاوي رامنځته کړي.

## ټولنیزې رسنۍ

**احمد ظاهر "رشال":**

باید هوښیاران سو، دا زمانه په تېزۍ را څخه تېرېږي، د زړه له هر ضربان سره موږ د خپل مرګ او قبر خوا ته نور هم نژدې کېږو، در یاد کړه! هغه د باندار خواږه ملګري چې تر موږ تاسو د مخه تللي او له زرهاوو ارمانونو سره اوس تر خاورو لاندي پراته دي، د انسان مثال د واورې د تجار په څېر دی چې د هري لحظې له تېرېدو سره یې واوره ویلې کېږي، نو وخت هم پر موږ او تاسو داغسې ژر ختمېږي او موږ له خپل منزِل سره لا نور هم نژدې کېږو، که موږ په دغه موده کې یو څه وکړل، نو کامیابي زموږ ده، خو که خدای مه کړه دغه وخت په غفلت او بې پروایي کې را څخه تېر سو، بیا به نو تباهي او بربادي زموږ له پاره انتظار کوي!

**زمری "نوروز":**

د زاړه عمر انسانان د ماشومانو په څېر ډارېږي.

کله چې یو انسان د ځوان حالت څخه د زوړ والي عمر ته داخل سي او دا انسان د کوم څه څخه چې ډارېږي، د محافظت نه شتون دی.

دا زاړه انسانان د ماشوم په څېر ناز غواړي او هم څار نه.

که د اولادونو او یا د کورنۍ له خوا یوازې سي، دوی د ماشوم په څېر ژاړي، ګیله من وي او هم کونجکاو وي.

**Dr Aman Shams:**

د شپې له خوا لږ تر لږه ۳۰ دقیقې تر خوب وړاندې، باید ځیرک ټیلیفون، آیپډ یا ټابلیټ کمپیوټر او عادي کمپیوټرونه و نه کارول سي، ځکه د هغوی رڼا خوب تښتوي.

**محمد خالد "خالد":**

رښتیني دوستان هغه څوک دي چې په غم او خوښۍ دواړو کې در سره شریک سي.

**حکمت الله "صلحي":**

په ژوند کې صبر، استقامت، اخلاق او نوښتونه د بریا کیلي په لاس درکوي، صابر واوسئ، الله جل جلاله تر مور او پلار لا مهربان دی.

**عبدالواسع "سمسور":**

په ۷۰ کاله کې تر ټولو بد وخت؛ د ځوانۍ په وخت کې غربت دئ!

**Jan Mohammad Salih:**

ستاسو په زغم کې؛ ستاسو او مقابل لوري دواړو ګټه ده!

**Nisar Samad Wasifi:**

اوسپنیز تکل؛

وخت ځي نه، بلکي تښتي! نو نن پر سبا مه پایله!